ورځپاڼه
# هیواد

مؤسس: عبدالرووف بېنوا | د تاسیس کال۱۳۲۸ لمریز | **دوشنبه د رمضان المبارک ۱۰مه ۱٤٤٦ق کال،** د کب ۲۰مه ۱٤۰۳ ل کال،د مارچ ۱۰مه ۲۰۲۵م کال، خصوصي گڼه۵۶۴مه ، پرله پسې گڼه۶۵۴مه، اتمه دوره

امارت اسلامی افغانستان
وزارت ارشاد، حج و اوقاف
اوقات افطار و سحری ولایت کابل

| | |
|---|---|
| رمضان | ۱۰ |
| ایام | دو شنبه |
| تاریخ | ۱٤۰۳/۱۲/۲۰ |
| افطار | ۶:۰۲ |
| عشاء | ۷:۲۱ |
| ختم سحری | ٤:٤۰ |
| آذان فجر | ٤:٤۵ |

### پخواني جنرالان او افسران:
## ګاونډي هېوادونه دې د افغانانو حق بېرته ور وسپاري

په کابل کې ګڼ شمېر پخوانيو جنرالانو د یوه خبري کنفرانس په ترڅ کې له ګاونډیو هېوادونو غوښتي، چې نړیوالو اصولو، قوانینو او ښه ګاونډیتوب ته په کتو دې ټولې هغه جنګي او ترانسپورټي الوتکې او تجهیزات، چې د افغانستان د ملت او خلکو ملکیت و، بېرته افغانستان ته وسپاري. یادو جنرالانو په دې غونډه کې ویلي، چې امریکا د افغانستان وسلې او پوځي تجهیزات لوټ او له منځه یوورل. دغه‌راز امریکا د اشغال پر مهال خپل زاړه او له کاره لوېدلي پوځي تجهیزات پر افغانستان وپلورل. په دې غونډه کې پخواني جنرال کامران امان ویلي، چې امریکا د اشغال پر مهال خپل زاړه او له کاره لوېدلي نظامي تجهیزات پر افغانستان وپلورل. نوموړي زیاته کړې، چې امریکا د ویتنام او عراق له جګړو پاتي **۳مخ**

## تېره اوونۍ د وسپنې پټلیو له لارې نږدې ۸۶ زره متریک ټنه توکي لېږدول شوي



د ټولګټو وزارت وایي: د کب میاشتې له لسمې تر ۱۶مې پورې د دې وزارت د وسپنې پټلۍ له لارې ۸۵ زره او ۷۱۷ متریک ټنه انتقالات شوي دي. یاد وزارت زیاته کړې: د حیرتان بندر له لارې ۶۶ زره او ۶۲۹ ټنه، د آقینې بندر له لارې دوه زره او ۳۰۱ ټنه، د تورغونډۍ بندر له لارې ۱۲ زره او ۷۱۲ ټنه او د خواف–هرات له لارې څلور زره او ۷۶ ټنه انتقالات شوي، چې ټولټال ۸۵ زره او ۷۱۸ ټنه نفتي، غیر نفتي او نور مواد هېواد ته وارد او صادر شوي دي .د دې وزارت د معلوماتو له مخې: د انتقالاتو له ډلې یوه برخه ټرانزیټ او صادرات دي، په تېره اوونۍ کې دوه زره او ۳۹۰ ټنه ټرانزیټ او صادرات شوي، چې لویه برخه یې وچه مېوه، د انارو جوس، کېنو او کچالو دي. یاد وزارت وایي: هر څومره چې د وسپنې پټلۍ له لارې د صادراتو او انتقالاتو کچه لوړېږي، په هماغې اندازه کاري فرصتونه برابرېږي، ملي عواید زیاتېږي **۳مخ**

## د بهرنیو چارو وزیر په رسمي سفر عمان ته تللی



د افغانستان د اسلامي امارت د بهرنیو چارو وزارت سرپرست مولوي امیرخان متقي په رسمي سفر عمان ته تللی. له یاد وزارت څخه په خپره شوي خبرپاڼه کې راغلي ،چې د بهرنیو چارو وزارت سرپرست مولوي امیر خان متقي پرون د عمان سلطنت د بهرنیو چارو د وزیر بدر بن حمد البوسعیدي په بلنه هغه هېواد ته په رسمي سفر روان شو.
د سرچینې د معلوماتو له مخې، په پام کې دي، چې ښاغلی متقي به د دغه سفر په ترڅ کې د عمان سلطنت د بهرنیو چارو پر وزیر سربېره د هغه هېواد له نورو لوړپوړو چارواکو سره هم د سیاسي او اقتصادي اړیکو او د دوه اړخیزو همکاریو پر پراختیا خبرې وکړي.

## غور کې ټرافیکي پېښې ۴ تنو ته مرګ ژوبله اړولې

د غور د امنیې قوماندانۍ د رسنیو دفتر د یوې خبرپاڼې په خپرولو سره ویلي: فېروزکوه ښار کې د ټرافیکي پېښې له امله دوو کسانو ژوند بایللی او دوه نور ټپیان شوي.خبرپاڼه کې ویل شوي چې دغه پېښه ورمه ورځ د فېروزکوه ښار «پوزلیچ» سیمه کې شوې ده. د پېښې د رامنځ ته کېدو د څرنګوالي په اړه څه نه دي ویل شوي، خو لامل یې د موټر چلوونکي بې‌احتیاطي ښوول شوي. د موټرچلوونکو بې احتیاطي، د سړکونو بد وضعیت **۳مخ**

## د قطر سرې میاشتې په کندهار کې یو روغتیایي مرکز جوړ کړ

د کندهار ډنډ یوه له هغو ولسوالیو څخه ده، چې اوسېدونکي یې د ولسوالۍ په کرز کلي کې د قطر د سرې میاشتې په مالي همکارۍ



روغتیایي خدمتونو له نشتون څخه شکایت کوي او غوښتنه کوي، چې روغتیایي خدمتونه ورته برابر شي. اوس تازه ورته د دې نوی روغتیایي کلینیک جوړ شو. د کندهار د سرې میاشتې ریاست مرستیال حافظ عزیزالرحمن وایي: د یاد کلینیک رغنیزې چارې د څلورو میاشتو په جریان کې د ۹۱زره امریکایي ډالرو په لګښت ترسره شوې.
(( د افغاني سرې میاشتې له لوري د قطر د سرې میاشتې له مسئولینو څخه غوښتنه وشوه ،چې موږ په دغې ساحه کې یو روغتیایي کلینیک ته اړتیا لرو، چې د دوی له سروې او معلوماتو څخه وروسته بودیجه تأیید شوه، چې شاوخوا یو نوي زره امریکایی ډالره لګښت پرې راغلی.))
د یاد کلینیک مسئولین وایي: دوی به د نسایي ولادي، اورتوپیډي، د ماشومانو خوارځواکۍ او واکسین په برخو کې خدمات وړاندې کړي. **۳مخ**

## « فراه هدا روب » تولیدي کارخونه د ورځې ۲۰۰ کیلوګرامه روب تولیدوي

د فراه سیمه ییز مسئولین په فراه ولایت کې د « فراه هدا روب » تولیدي کارخونې د مسئولینو له خولې وایي، چې دغه کارخونه هره ورځ ۲۰۰ کیلوګرامه روب تولیدوي.
د یادې کارخونې مسئوله فریبا شریفي وایي، چې پر یادې تولیدي کارخونې ۲۵ زره امریکایي ډالره پانګونه شوې او په مستقیم او غیر مستقیم ډول بزګرانو، بېوزلو، اړمنو او کونډو مېرمنو ته د کار زمینه برابره شوې ده. نوموړې زیاته کړې، چې دا مهال شرکت له مخلوط او پرېس دستګاوو څخه کار اخلي، خام



توکي د فراه له شنو خونو او ساتونکي توکي له ایران او هرات څخه واردوي. د نوموړې په وینا، که اړین ماشینونه له چین او ایران څخه وارد شي او سیمه ییزه اداره او موسسې ورسره همکاري وکړي، نو دغه کارخونه به د روب تر څنګ لوبیا، تُن ماهي، نخود او عدس هم **۳مخ**

## بغلان کې ۸۵ سلنه وګړو روغتیایي خدمتونو ته لاسرسی موندلی

د بغلان د عامې روغتیا ریاست مسئولین وایي، چې د افغانستان اسلامي امارت په بیا حاکمیت سره بغلان ولایت کې روغتیایي خدمتونه پراخ شوي او له امله یې د دې ولایت ۸۵ سلنه وګړي د روغتیایي خدمتونو تر پوښښ لاندې راغلي. د بغلان د عامې روغتیا رئیس ډاکټر عبدالقهاراحمدي وایي چې د بغلان ولایت ۸۵ سلنه وګړي روغتیایي خدمتونو ته په اساسي توګه لاسرسي لري او پاتې ۱۵سلنه وګړي یې چې په لرې پرتو او صعب العبورو سیمو کې ژوند کوي او روغتیایي خدمتونو ته لاسرسي نه لري، خو هڅې دادي څو په دې ولایت کې ټول وګړي د روغتیایي خدمتونو تر پوښښ لاندې راشي.احمدي زیاته کړه چې په دې ولایت کې څلور ولایتي روغتونونه، اووه خصوصي روغتونونه او د مرکز په ګډون په ټولو ولسوالیو کې یې ۱۳۳ کلینیکونه فعالیت لري او ۱۶۵۷روغتیایي کارکوونکي د روغتیایي خدمتونو په وړاندې کولو بوخت دي. په همدې مهال د بغلان اوسېدونکي خوښ دي چې روغتیایي خدمتونه له پخوا دې ولایت کې پراخ شوي، **۳مخ**

## هلمند کې قاچاقي توکي نیول شوي

د ۲۱۵عزم قول اردو د اووم نمبر سرحدي محمدي لواء مجاهدینو د هلمند د خانشین ولسوالۍ په خواجه علي سیمه کې له بېلابېلو توکو بار دوه بېنس موټرونه نیولي دي.نیول شویو توکو کې ۵۳۵۲۰ کیلوګرامه مس، لس ټنه ټوکر ، ۵۰ بوري د کوکنارو تخم ، یوه پایه سټلایټ ټیلفون او ګڼ نور توکي چې ګاونډي هېواد ته قاچاقېدل نیولي دي. یاده دې شي چې هلمند کې پخوا هم ګڼ قاچاقي توکي نیول شوي وو.

## د غور د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ ریاست څه باندې ۲۴ میلیونه افغانۍ عواید راټول کړي




د غور ولایت د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ ریاست مسئولین وایي، چې یاد ریاست د روان ۱۴۰۳ کال په تېرو ۱۱ میاشتو کې څه باندې ۲۴ میلیونه افغانۍ عواید راټول کړي دي.د یاد ولایت د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ رئیس مولوي محمد یوسف راهنما باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي ،چې یاد ریاست د روان ۱۴۰۳ کال په تېرو ۱۱ میاشتو کې د مخابراتي خدمتونو، دولتي ادارو ته د مراسلاتو د وېش، پاسپورټ، تحصیلي او تعلیمي اسنادو او د یاد ریاست د روزنیز مرکز له لارې ۲۴ میلیونه ۷۰۰ زره افغانۍ عواید راټول او د دولت خزانې ته یې سپارلي دي. نوموړي ویلي چې د تېر کال عواید ۵.۲ میلیونه افغانۍ وو، خو د سږ کال عواید یې د تېر په پرتله نږدې ۴ سلنه زیات شوي، چې اساسي لامل یې د یاد ولایت اوسېدونکو ته پر وخت د خدمتونو وړاندې کول په ګوته کړي دي.

د فرهنګی میراثونو ساتنه د ټولو ګډ مسئولیت دی ۲مخ

د مېرمنو حقونه؛ د لوېدیځ پروپاګند او واقعیتونه ۲مخ

فقر و عوامل عمده آن ۲مخ

## د سرپل د ۶۴ ښوونځیو د بیارغونې پروژې منظورې شوې




د پوهنې وزارت سرپل ولایت کې د ۶۴ ښوونځیو د بیارغونې پروژو د منظورېدو خبر ورکړی.یاد وزارت ویلي: دغه ښوونځي د سرپل په مرکز او ولسوالیو کې بیارغول کېږي چې ۵۱۲ زره ډالره لګښت پرې راځي. سرچینه زیاتوي، چې د دې لویې پروژې موخه د ویجاړو شویو ښوونځیو ترمیم او د ښوونیز چاپېریال ښه والی په ګوته شوی. **۳مخ**

## وزارت شهرسازی و مسکن: در پکتیکا زمینه سرمایه گذاری فراهم شده است




پلان‌های وزارت شهرسازی و مسکن در ولایت پکتیکا زمینه سرمایه گذاری میلیون‌ها دالر را فراهم کرده است. دفتر مطبوعاتی وزارت شهر سازی و مسکن دیروز با نشر این خبر گفته است که مولوی محمد طاهرسیف‌الجهاد، رئیس شهرسازی و مسکن ولایت پکتیکا می گوید که پلان اصلاحی و تفصیلی وزارت، زمینه سرمایه گذاری حدود شش (٦) میلیون دالر را فراهم کرده است. مولوی سیف الجهاد می افزاید که پلان قبلی ظرفیت ایجاد امکانات معیاری لازم شهری را نداشت و به همین منظور تلاش ها را با همکاری مقام ولایت و ریاست شاروالی شرن آغاز کرد که پلان جدید **ص۳**




# د مېرمنو حقونه؛ د لوېديځ پروپاګند او واقعيتونه

د مارچ ۸مه د ښـځو نړيواله ورځ ده او په دې مناسـبت د نړۍ بېلابېل سازمانونه، رسنۍ او حکومتونه د ښـځو د حقونو په اړه څرګندونې کوي. سږ کال بيا هم د لوېديځو رسـنيو او يو شمېر نړيوالو بنسټونو پام افغانستان ته و، چېرې چې دوی ادعا کوي، ګواکې افغان مېرمنې له خپلو اساسي حقونو بې برخې دي. دا ډول تبليغات نه يوازې له حقيقت څخه لرې دي، بلکې د سـياسي اهدافو د ترلاسه کولو لپاره د وسيلې په توګه کارول کېږي.

کـه د واقعيتونو له نظره افغانسـتان ته وکتل شي، د اسـلامي امارت تر حاکميـت لاندې مېرمنو ته هغه ټول حقوق ورکړل شـوي، چې اسـلام ورکړي دي. اسـلام ښـځو ته د عزت، وقار او عدالت نظام ورکړی، د دوی حيثيت يې لوړ کړی او ټولنيز امنيت يې ورته تضمين کړی دی.

د لوېديځـو هېوادونو تبليغات تر ډېره پـر دې راڅرخي، چې ګواکې افغان مېرمنې تعليم، کار او عامه مشـارکت ته لاسرسی نه لري، خو که ژور تحليل وشي، دا ادعاوې د واقعيت خلاف دي.

اسلامي امارت له پيل څخه ويلي، چې د نجونو تعليم ته ژمن دی، خو بايد دا تعليم له اسلامي او افغاني ارزښتونو سره سم تنظيم شي، نه د لوېديځو معيارونو او ارزښتونو په چوکاټ کې.

اسلامي امارت د ښځو لپاره د نکاح د انتخاب، د مهر، د ميراث او د مالي حقونـو تأمين ته ځانګړې پاملرنه کـړې او د محاکمو، عدلي او شرعي نظام له لارې ښځې کولی شي خپل حقوق خوندي کړي.

لوېديځې نړۍ چې کوم ډول د ښـځو آزادي تعريف کړې، هغه د افغان ټولنې له ارزښتونو سره هېڅ توافق نه لري. زموږ ټولنه ښځې ته د مور، خور او مېرمنې په حيث لوړ مقام ورکوي. د اسـلامي نظام تر سيوري لانـدې، مېرمنې له هـر ډول جنسي ځورونې او ناوړه اسـتفادې څخه خوندي دي، چې دا ستونزه لوېديځه ټولنه کې اوج ته رسېدلې ده.

که لوېديځ هېوادونه واقعاً د ښـځو حقوقـو ته ژمن وای، نو ولې يې په تېرو شـلو کلونو کې د افغان مېرمنو سـتونزې نه حلولې؟ برعکس، د جګړې، فقر، بېوزلۍ او اخلاقي فساد قرباني يې کړې. د هغوی تبليغات يـوازې د خپلو ګټو لپـاره دي، نه د افغان مېرمنـو د حقيقي وضعيت د اصلاح لپاره.

افغان مېرمنې د اسـلامي ارزښتونو په سيوري کې خوندي دي، د شرعي حقوقو خاوندانې دي او د اسلامي امارت عدلي او شرعي سيستم مکلف دی، چې د هغوی حقوق تأمين کړي. د لوېديځ تبليغات ۳مخ

# د فرهنګي ميراثونو ساتنه د ټولو ګډ مسئوليت دی

**شاه محمود درويش**

د ۱۴۰۳ لمريزکال د کب يا حوت مياشـتې شـلمه نېټـه د هېواد د فرهنګـي ميراثونـو د سـاتنې ورځ ده، البته فرهنګي ميراثونه پـه واقعيـت کـې د هېوادونو تاريخي مخينـې را څرګندوي، پردې بنسـټ د هېواد د فرهنګي ميراثونـو او تاريخـي آبداتـو اواثارو سـاتل په حقيقت کې د دولـت او ملت يعنې د ټولو ګډه دنده او مسئوليت دی.

افغانسـتان د خپـل پنځـه زره کلن تاريـخ پـه درلودلو سره د پلازمينې کابل په ګډون د هېواد د ۳۴ ولايتونـو پـه مرکز او هم اړوندو ولسـواليو کـې لرغونې تاريخي مکانونه، آبدات او ډول ډول اثـار لري، چې د اسـلامي امـارت د مسـئولو ارګانونو له لورې يې څارنه اوسـاتنه کېږي. يعني د اړتيا پرمهال هغه تاريخي لرغونې آبـدات او مکانونه، چې د ړنګېـدو لـه ګـواښ سره مخ وي، په مناسـبو وختونو کې يې رغوي، د تخريب مخه يې نيسي او ساتنه ترې کوي، چې دا وقعاً غوره اقدام دی. په دې هيله چې د هېـواد د تاريخـي او لرغونو آبداتـو، مکانونـو او اثـارو د ساتنې او څارنې لړۍ په دوامدار ډول د مسئولو ارګانونو له لورې په لومړيتوب کې ځای ولري.

البته د اسـلامي امارت د مسئولو ارګانونـو ترڅنـګ د ټولـو هېوادوالو ګډ مسئوليت هم دې، ترڅو زمـوږ په اړوندو سـيمو کې چې کوم تاريخـی لرغونې آبـدات، مکانونه يا اثار شـتون لري، دهغو په ښـه ډول سـاتنه او څارنـه بايـد وکـړو، ځکه چې دغـه ټول پـه حقيقت کې د افغـان ولـس لرغونـې پانګه ده او په دوی پـورې اړه لري او په ټوله کې د دغو اثارو شـتون نورو ته زموږ د لرغوني فرهنګ ښـکارندويي کوي، نوځکه يې سـاتنه او څارنه هم د هر افغان مسئوليت، ايماني او وجداني دنده او وجيبه ده.همدا راز د يادونې وړ ده چـې زموږ هېـواد د خپل ښـه جغرافيايي موقعيت له پلوه د سـيمې او نړۍ د سـيلانيانو د راجلبولـو لپاره هم ښـه په زړه پورې طبيعـي مناظـر، لرغوني ځايونـه، تاريخـي او فرهنګي آبدات او ښـکلي لاسـي صنايع لري، نو افغانستان پاک الله (ج) د ورکړيـو طبيعي ښـکلاګانو، تاريخـي او لرغونـو ځايونو په لرلو سره د نړۍ د سـيلانيانو او ګرځندويانو د جذب ښـه ځای هـم دی، توريزم يـا ګرځندوی ډېرو هېوادونو ته ښـه عايداتي سرچينـه هم ده، پردې اسـاس د نړۍ د سيلانيانو او ګرځندويانو لـه لـورې د ډېـر اهميـت وړ ګڼـل کېـږي، لـه نېکـه مرغه چې افغانسـتان هم يـو له هغو هطوادونو څخه دی چې په خپلو ۳۴ ولايتونو کې بيلا بيل ښـکلي، په زړه پورې او زړه راښکونکي طبيعـي مناظر، لرغـوني آبدات او ډول ډول جوړ شـوي ښکلي لاسي صنايع لـري، نوغوره خبره داهـم ده چې شـکرالحمدلله د اوس لپـاره په ټولـه کې دهيواد په کچه امنيـت تأمين دی، نو له شـک پرته دا ټول هغه څه دي چې په سـيمه ييـزه او نړيواله کچـه سـيلانيان را جلبولی شي. نـو د اسـلامي امـارت اړونـد دولتي ارګانونـه او ترڅنګ يې خصوصي پانګـوال بايد د هېواد پـه ګڼ شـمېر ولايتونـو کې د همت ملا وتـړي او په بيلا بيلو برخو کـې پانګونـې وکړي او په ځانګړې توګه د سـيلانيانو د راجلبولو لپاره مناسـب اقدامات او لازمـي آسـانتياوې را منځته کړي، ترڅـو د هېـواد بيلابيلو ولايتونـو ته د کال پـه مختلفو موسمونو کې له ګڼ شمېر سيمه ييزو او نړيوالو هېوادونو څخه د سيلانيانو د سفر په لړکې دولتي او خصوصي بنسـټونو او په ټوله کـې هېوادوالو تـه هراړخيزې اقتصادي ګټې ورپه برخه شي.

هېره دې نه وي، له کومو ځايونو څخـه چـې بهـرني او کـورني سيلانيان ليده کاته کوي، له شک پرته چـې له اړتيا سره سـم ګڼ شـمېر هطوادوالو ته د اقتصادي ګټو ترڅنـګ کاري بوختياوې هـم رامنځتـه کېـږي، لکـه د سـيلانيانو د تګ راتـګ لپاره موټرونو ته اړتيا ده، د خوراک، څښاک او اوسـېدو لپاره يې هم د هوټلونو شـتون ډېر اړين دی، نو د دغو چـارو تنظيم په خپله هېوادوالو تـه د کاري بوختياوو د رامنځته کېدلو ترڅنګ واقعاً د اقتصادي ګټو د ترلاسـه کولو زمينه هم برابـروي. په دې هيله چـې د دغې برخې غوړېدو ته د اسلامي امارت د اړوندو مسئولو ارګانونـو او خصوصي پانګوالو له لورې هراړخيزه پاملرنه وشي، ځکه چې هېـواد او هېوادوالو ته يوه ډېره ښـه عايداتي سرچينه کېدای شي.

**عبداللطيف نظری:**

# پيشرفت کار برخی پروژه‌ها باعث رشد اقتصاد افغانستان شده است

معين مسـلکی وزارت اقتصاد، گزارش اخير سرمنشـی سازمان ملـل متحـد را تأييـد نمـوده، می‌گويـد که پيشرفـت در کار برخـی پروژه‌هـا باعث رشـد اقتصاد افغانسـتان شـده است. در گزارش سـه ماهـه انتونيو گوتـرش در مـورد وضعيـت افغانسـتان آمده که ازماه نومبر ۲۰۲٤ تا ۳۱ جنوری سـال ۲۰۲۵ ميلادی، اقتصاد افغانسـتان ۲,۷ درصد رشـد کرده اسـت. منبع می‌افزايـد کـه در ايـن مدت، ارزش پـول افغانـی در برابـر دالر امريکايی نيز ۱۵,۷ درصد بلنـد رفتـه اسـت. در هميـن حال عبداللطيـف نظری، معين مسلکی وزارت اقتصاد می‌گويد که تأمين امنيت سراسری، ايجاد همبسـتگی ملـی و همـکاری مردم با نظام نيز در رشد اقتصاد افغانسـتان کمک کرده است. نظـری گفـت: (( در رشـد و توسـعه اقتصادی کشور عوامل مختلف نقـش دارند، به جريان افتـادن سرمايه‌گذاری‌های ملی و بيـن المللی در داخل کشـور و پروژه‌های اقتصـادی بزرگ و اشـتغالزا هـم از فکتورهای ديگريسـت که سـبب رشـد اقصادی کشـور گرديده است، تأميـن امنيـت سراسری، ايجاد نهضت ملی و همـکاری مردم بـا نظام هـم از نظـر روانی و سـاختاری در رشـد اقتصادی کشـور موثـر واقـع گرديده اسـت.))همزمان بـا ايـن، مبـصران اقتصـادی، گـزارش سرمنشی سـازمان ملل متحد را اميدوارکننـده خوانـده، تاکيد می‌کننـد که امارت اسـلامی با حل برخی مشـکلات اساسی، می‌توانـد زمينه را برای رشـد بيشـتر اقتصـاد کشـور فراهم سـازد. محمـد عيسـی مبارز، مبـصر اقتصـادی می‌گويد که رشـد اقتصاد افغانستان، وابسته به افزايـش توليـدات داخلی، صـادرات، تقويـت سـکتور زراعـت، تطبيـق پروژه‌هـای بزرگ اقتصادی، فراهم‌سـازی فرصت‌هـای کاری و جلـب سرمايه‌گـذاری اسـت.مبارز افـزود: (( در داخـل کشـور بايد توليدات داشـته باشـيم و از منابعـی که داريم، اسـتفاده درست صورت بگيرد و زراعت در کشـور بايد مدرنيزه شـود، درحال حاضر زراعت ما و شما مانند سـال‌های سـابق به پيش می‌رود و بـا اصول و معيارهای جهانی مطابقت ندارد، هر قدر که توليدات بهتر داشـته باشيم، می‌توانيم صادرات خوبتر ارايه کنيـم و به اين ترتيب به رشـد اقتصـادی کشـور موثـر واقع شويم.)) ص۳

# فقر و عوامل عمده آن

**مجددی**

فقـر يکـی از پيچيده‌تريـن پديده‌های اجتماعی و اقتصادی اسـت که به طور مسـتقيم بر افراد و جوامـع تأثير می‌گذارد و باعث می‌شـود که افـراد به نيازهـای اوليه زندگـی مانند: غـذا، سرپـناه و بهداشـت دسترسـی کافی نداشـته باشند. اين پديده نتيجه عوامل مختلفی همچـون فـردی، اجتماعـی، طبيعـی و سياسـت‌گذاری‌های نادرسـت حکومت‌ها اسـت. اگر بخواهيم درباره اين عوامل به تفصيـل صحبت کنيـم، تنها اين چند سـطر کافی نيسـت و مطالب بسـياری را می‌طلبد. با اين حال، در ذيـل به‌طور کلی بـه برخی از عوامـل عمده فقر پرداخته می‌شود.

۱- نبـود زيرسـاخت‌ها: فقدان زيرسـاخت‌های اساسـی مانند مراکز بهداشتی، مراکز آموزشی و تحصيلات عالی، امنيت، برق، گاز، انـرژی، زيرسـاخت‌های کشـاورزی و حمـل و نقل در سـطح ملی، يکـی از عوامل مهم ايجـاد و افزايـش فقر در کشورهاست.

**۲- عدم دسترسـی بـه آموزش و پرورش:**

در کشورهای با دسترسی محدود به آموزش و سطح پايين دانش، معمولاً سطح فقر بالاتر است. زيرا افـرادی که دانـش کافی ندارنـد، نمی‌تواننـد شـغل‌های مناسـب و پردرآمد پيدا کنند و اين عامل باعث می‌شود که آن‌ها وارد چرخه فقر شوند.

**۳- تغييـرات اقتصـادی و بحران‌های مالی:**

تغييرات اقتصادی و بحران‌های مالی ماننـد رکـود اقتصادی و تـورم بـالا ميتوانـد منجـر به افزايش بيکاری، افزايش قيمت نيازهـای اوليـه و در نتيجـه، افزايش سطح فقر شود.

**۴- عوامـل اجتماعـی:** تبعيض قومی، جنسـی، نژادی، مذهبی و سـمتی يکی ديگر از عوامل فقـر و تنگدسـتی اسـت. اگر يکـی از گروه‌هـای اجتماعی به دليل تبعيـض نتواند به بازار کار دسترسی داشـته باشد، اين موضوع باعث افزايش فقر در جامعه می‌شود.

**۵- جنگ:**

جنگ يکی از عوامل عمده فقر در جوامع اسـت. کشـورهای درگيـر جنـگ به دليـل تمرکز بيشـتر به جنگ، بيشتر بوديجه را بـرای خريد اسـلحه هزينه ميکننـد و عـدم توجـه بـه بخش‌های ديگر مانند بهداشت، آموزش و اقتصاد سـبب ميشود کـه مـردم آن بـا مهاجـرت، بيـکاری، تـورم بـالا، رکـود اقتصادی و در نهايت با افزايش سطح فقر مواجه می‌شوند.

همچنيـن، جنگ‌هـا نـه تنها بـر کشـورهای درگيـر تأثير می‌گـذارد؛ بلکـه می‌توانند در سطح جهانی نيز باعث افزايش فقر شود.

**۶- مشکلات بهداشتی:**

در کشـورهايی کـه مـردم به راحتی بـه امکانات بهداشـتی دسترسـی ندارنـد، مجبورانـد بـرای درمان و دسـتيابی به اين امکانـات هزينه‌هـای زيـادی بپردازنـد کـه در نهايت باعث افزايش فقر می‌شود.

**۷- عوامل طبيعی:**

سـيلاب‌ها، خشکسـالی و تغييـرات اقليمـی می‌تواننـد زندگی مردم را تحت تأثير قرار داده و منجر به فقر شـود؛ البته بيشـتر کسـانی که درآمد آن‌ها وابسته به کشاورزی و زراعت اسـت از اين وضعيت آسـيب می‌بينند.

**۸- فقر ارثی:**

فقـر ارثـی يکـی از عوامـل عمده فقر اسـت. زيرا فرزندان خانواده‌هـای فقيـر نمی‌توانند بـه تحصيلات عالی بـا کيفيت دسترسی داشته باشند. اين مسئله باعث می‌شود که آن‌ها در آينده نتوانند شغل مناسـبی پيدا کنند و در نتيجـه يـک چرخه فقر ادامـه يابد و تبديـل به يکی از عوامل عمده فقر شود. با توجه به معضلات فوق‌الذکر، ميتوان راهکارهايی بـرای خلاصی از ايـن معضلات و رفـع آن‌ها در دسـت گرفـت کـه در ذيل به برخی از آن‌ها اشاره می‌شود:

**۱- توجه به ايجاد زيرسـاخت‌ها:**

ايجـاد مراکـز آموزشـی و دانشـگاه‌های دولتی با کيفيت بالا در کشور برای ارتقاء سطح تحصيلات و افزايش مهارت‌های نيروی کار.

۲- سـاخت مراکز بهداشـتی با سـتندردهای بين‌المللی: تأسيس مراکـز بهداشـتی و درمانـی پيشرفتـه که ميتواننـد خدمات بهداشـتی با کيفيت را به مردم ارائه دهند.

**۳- توسـعه حمل و نقل عمومی:**

ايجاد مسـيرهای حمـل و نقل عمومـی کارآمد و مـدرن برای تسـهيل حرکت مردم و کاهش مشکلات ترافيکی.

۴- ايجاد زيرسـاخت‌های بخش انرژی و آب: سـاخت بند برق های آبی و ايجاد زيرساخت‌های پايـدار در زمينه تأمين انرژی و منابـع آب برای کشـاورزی و صنعت.

**۵- توسعه زيرساخت‌های کشاورزی:**

راه اندازی سيسـتم‌های آبياری منظـم و داير نمـودن دوره‌های آموزشـی بـرای کشـاورزان بـه منظـور بهبـود توليـدات کشـاورزی و کاهش مشکلات در بخـش کشـاورزی در درازمدت، اين اقدامات ميتواند سـطح فقـر را کاهـش داده و کشـور را بـه سـوی پيشرفت، تعالی و آبادی سوق دهد.

# پر ډيورنډ فرضي کرښه ستونزې را ولاړول د دواړو هيوادونو پر زيان دي

له تېرو څو ورځو راهيسـې د تورخـم اړونده سـيمه کې پر ډيورنډ فرضي کرښـه د اسلامي امارت او پاکسـتاني ځواکونو ترمنځ نښتې شوې.په دې نښتو کې دواړو خـواوو ته پر ځاني زيانونـو سربېره، سـوداګرو او ځايي خلکو تـه درانه مالي زيانونه هم اوښـتي او سلګونه کورنۍ لـه خپلو مېنو بې ځايه شوې دي.په تورخم کې جګړو تـه د غبرګونونو پـر دوام، د افغان سـولې لپـاره د امريکا پخواني ځانګړي اسـتازي هم له نږدې دوو اوونيو راهيسې د تورخم تـړل کېدو او جګړې تـه پـه اشـارې ويـلي، افغان حکومت او اسـلام ابـاد بايد پر داسې هوکړې تمرکز وکړي ،چې سـتونزې حل او موجود ګواښـونه لـه منځـه يـوسي. خليلزاد زياته کړې: (( تر دې دمه د افغانسـتان او پاکسـتان ترمنځ په تورخم کې پر ډيورنډ فرضي کرښـه او د سوداګرۍ پر دې مهمه لاره له يوې اوونۍ اوږده جګړه شـوې او خلکو ته په کې مرګ ژبله اوښـتي. ځيني خلک له خپلو سيمو بې ځايه شوي او دغه راز د دواړو لورو سـوداګرو تـه ميليونونه ډالره زيان رسېدلی. ډيپلوماسي غوره لاره ده، دغـه چاره به د افغانستان، پاکستان او مرکزي آسيا سوداګري عادي حالت ته را وګرځوي او دواړه هېوادونه به ترې ګټه واخـلي.)) پخواني ډيپلومـات عزيـز معـارج په دې اړه وايـي: (( جګـړه او نښـتې د حل لاره نه ده او دغه سـتونزې بايـد د ډيپلوماسـۍ لـه لارې حل او فصـل شي. د پاکسـتان دغه چاره به د دواړو غاړو ترمنځ سـتونزې حل نه، بلکـې لا ډېرې کړي. که روان وضعيت همداسې دوام وکړي، د دواړو ملتونـو ترمنځ به نفاق زيـات شي او دې پېښـو سره بـه امنيتي سـتونزې هم ډېرې شي.)) تورخـم ښـارګوټي کې کاروباريان وايي: له تېرو دوو اوونيو راهيسـې يې کارونه پر ټپـه درېدلي او پـه خبره يې، د دواړو خواوو په نښتو کې مالي زيانونونه ور اوښتي دي. دوی لـه دواړو دولتونو غواړي چې د ستونزې د دايمي حل لپاره دې هڅـې وکـړي. د پوځـي چارو کارپوهان وايي، افغانستان تل د پاکسـتان د غلطو پاليسيو له امله قرباني شوی او په خبره يې، افغان حکومـت ته پکار ده، چې د اسـلام آباد پر وړاندې له هوښيارانه سياسته کار واخلي، ترڅو بيا افغانسـتان د جګړو ډګر ونـه ګرځـوي. د پوځـي چارو کارپـوه توريالی ځاځی وايي.(( پاکسـتان له پيداښته تر نن ورځې پورې د افغانستان د تباهـۍ او بربادۍ لپاره هڅه کـړې او دغـه راز اوس هغه وخت رارسـېدلی چـې افغان ملت سره يـو موټی شي، ترڅو وطـن له روان بـد وضعيت او جنايتکارانـو وژغورل شي.)) د ننګرهـار مرسـتيال والي پر ډيورنډ فرضي کرښـه د اسلامي امارت او پاکسـتاني ځواکونو ترمنـځ لـه نښـتو وروسـته وضعيت جنګي بولي او وايي، هلته د کرښـې دواړو غاړو ته سيمې له اسـتوګنې تشې شوې دي. مولوي عزيز الله مصطفی زياتوي، تورخم کې له جګړې وروسـته دوه ځلې له پاکستاني چارواکو سره خبرې شـوي او پاکستاني اړخ ته يې ويلي ،چې د تورخـم لارې د تـړل کېدو موضوع بايد سـياسي نه شي. مصطفـی پـه دې اړه وايي: (( تورخم ښـار کې پـر ډيورنډ فرضي کرښه د دوی او پاکستاني ځواکونـو ترمنـځ د تېرو څو شپو له نښتو وروسته وضعيت لا هـم عـادی نـه دی. هلته د کرښې دواړو ۳مخ

# افغـــان اعلانـات

### اعلان مفقودی

یک قطعه مکتوب گمرکی دارای نمبر ۹۰۱۳۱۰۶۴۶۴ به اسم شرکت امید زبیر لمیتد مفقودگردیده از اعتبا رساقط است.۹۷۰۶

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم عبدالحمید فرزند محمد امین یک عراده موتر پلیت ۶۸۷۴۲ ل کابل نوع بنز اکتروز جرمنی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای رحیم الله فرزند نور الحق بفروش رسانیده است.بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۶۹۸

### اطلاعیه پشتنی بانک

(عنوان پروژه: تهیه وتدارک روتر مورد ضرورت پشتنی بانک)

«پشتنی بانک به تعداد (۱۰) پایه روتر (Router C ۱۱۰۱ ٤-P) طبق مشخصات ذیل ضرورت دارد.

**Router C 1101 4-P:**

**1.DMVPN**

**2.SecurityK9**

**3.IPsec, SSL, TLS**

**4.VPN Commands**

**5.3years' security license with supports**

اداره پشتنی بانک از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت مینماید تا در پروسه داوطلبی (۱۰) پایه روتر طبق مشخصات فوق اشتراک نموده و نقل چاپ شده شرطنامه مربوط را در مقابل پرداخت (۱۰۰۰) افغانی بدست آورده آفر های خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه و طبق قانون وطرزالعمل تدارکات طور سربسته از تاریخ نشر اعلان الی (۲۱) بیست ویک روز به مدیریت عمومی خدمات پشتنی بانک واقع پل باغ عمومی ارایه نمایند آفرهای ناوقت رسیده و انترنتی قابل پذیرش نمیباشند.

تضمین آفر به صورت نقد و بانک گرنتی بوده و جلسه آفر گشایی در تالار اطاق جلسات منزل دوم پشتنی بانک تدویر میگردد. «.۹۷۰۵

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم محمد اکرم جان فرزند غلام نبی یک عراده موتر پلیت ۱۶۸۳۷ بس کابل نوع تیوتا کرولا کاستر خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای شاه محمد فرزند شیر دل بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۷۰۹

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم محمد اکرم فرزند غلام نبی یک عراده موتر پلیت ۱۶۸۳۶- بس کابل نوع تیوتا کاستر خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای شاه محمد فرزند شیر دل بفروش رسانیده است.بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۷۰۸

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم احمد شاه فرزند اورنگ شاه یک عراده موتر پلیت ۳۱۷۶۳- بس کابل نوع تیوتا هایس خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای شاه محمد فرزند شیر دل بفروش رسانیده است.بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۷۰۷

### اطلاعیه مزایده جایداد

طبق هدایت محکمه ذیصلاح قرار است یک باب بلند منزل به مساحت ۱۵۰۱.۲ متر مربع واقع چهار راهی زنبق به ارتفای هفت منزل معه تهکوی که دو منزل آن توقف گاه و یک منزل دیگر به شکل تهکوی حال بوده و چهار منزل دیگر به شکل آپارتمان و صالون های بزرگ اعمار شده است واقع ناحیه دهم شهر کابل ملکیت حاجی خلیل خدران فرزند سمارگل دارنده قباله شرعی نمبر ۶۱۲۶ بر ۱۱۱۸ مورخ۱۳۹۰/۱۱/۲ به فروش می رسد . افراد حقیقی و حقوقی که خواهان خریداری جایداد فوق باشند در مدت ده روز درخواستی های خویش را رسما به ریاست حقوق ولایت کابل واقع فروشگاه تسلیم نموده و شرطنامه را اخذ نمایند.۹۷۱۰

### اعلان داوطلبی

جمعیت هلال احمرافغانی در پروسه داوطلبی بکرایه گیری موترها به خاطر تیم سیار صحی مربوط ریاست خدمات صحی در چهار ولایت کشور، که هر شرکت میتواند شرطنامه و آفر پروژه های مورد نظر خویش را اخذ نماید:

**۱. ۲ ( دو) عراده در ولایت ننگرهار ( خوگیانی و مهمندره)**

**۲. ۱ ( یک ) عراده در ولایت هرات ( پشتی کوه)**

که مشخصات آن درج آفر میباشد، به داوطلبی میسپارد. شرکت های تجارتی ، لوژستیکی و ترانسپورتی که در قسمت فعالیت داشته باشند، درخواست های خویش را به آمریت تهیه ، تدارکات و قرار داد ها جمعیت هلال احمر افغانی واقع افشار سیلو بسپارند، خودشان بعد از نشر اعلان الی مدت ( ۷ ) یوم به مجلس داوطلبی مراجعه نموده و پول حق الاشتراک مبلغ (۱۰۰۰) افغانی نقدآ اخذ میگردد.۹۷۲۸

اطلاعیه مزاییده سوم پشتنی بانک

به اساس قرار قضایی نمبر ۲۱۱ مورخ ۱۳۹۰/۵/۳۱ محکمه ابتدائیه تجارتی ولایت کابل و تجویز نمبر ۴۱۷ بر ۳۵۱ مورخ ۱۴۴۶/۵/۲۳ ریاست محکمه اختصاصی ولایت کابل یک باب مارکیت مندرج قباله شرعی نمبر ۳۸ بر ۳۷۷ مورخ ۱۳۸۱/۴/۴ اسمی سید کریم فرزند میر غلام سخی واقع ناحیه چهارم شهر کابل مقابل مارکیت میوه که از طرف شرکت واعظی در مقابل اخذ قرضه تحت تضمین پشتنی بانک قرار دارد ، به رویت محضر تاریخی ۱۴۴۶/۹/۴ ه ق مطابق ۱۴۰۳/۱۲/۱۴ ه ش هیئت مختلط تطبیق محترم حشمت الله فرزند عبدالسلام با ارایه مبلغ ۱۷۵،۲۰۰،۰۰۰ افغانی یک صدو هفتاد و پنج میلیون و دو صد هزار افغانی برنده مجلس مزاییده دومی اعلان گردیده است.بناء اشخاص حقیقی و حکمی که تقاضای خرید آنرا بالاتر از مبلغ ارایه شده داشته باشند میتوانند درخواست های خویش را بعد از نشر اعلان در مدت ۷ یوم به ریاست محترم حقوق ولایت کابل و مدیریت عمومی حصول تمویل مالی بانک بسپارند. و به اطلاع مسولین شرکت واعظی نیز رسانیده میشود تا در مجلس مزاییده حضور یابند در غیر آن حق شکایت را ندارند.۹۷۰۱

### اطلاعیه مزایده پشتنی بانک

به اساس قرار قضایی نمبر ۱۹۰ مورخ ۱۳۹۰/۵/۱۹ محکمه ابتدائیه تجارتی ولایت کابل و تجویز نمبر ۴۱۷ بر ۳۵۱ مورخ ۱۴۴۶/۵/۲۳ ریاست محکمه اختصاصی و محضر تاریخی ۱۴۴۶/۶/۵ هیت تطبیق ، یک دربند حویلی مندرج قباله شرعی نمبر ۷ بر ۹۶۳ مورخ ۱۳۸۷/۳/۲۰ اسمی ذکر الله فرزند ملک خان واقع کارته پروان که از طرف شرکت کابل تریدنگ در مقابل اخذ قرضه تحت تضمین پشتنی بانک قرار دارد ، به رویت محضر تاریخی ۱۴۴۶/۹/۴ ه ق مطابق ۱۴۰۳/۱۲/۱۴ ه ش هیئت مختلط تطبیق محترم جاوید فرزند مامور خان با ارایه مبلغ ۱۶،۷۰۰،۰۰۰ افغانی شانزده میلیون و هفت صدهزار افغانی برنده مجلس داوطلبی اعلان گردیده است.بناء اشخاص حقیقی و حکمی که تقاضای خرید آنرا بالاتر از مبلغ ارایه شده داشته باشند میتوانند درخواست های خویش را بعد از نشر اعلان در مدت ۱۰ یوم به ریاست محترم حقوق ولایت کابل و مدیریت عمومی حصول تمویل مالی بانک بسپارند. و به اطلاع مسولین شرکت کابل تریدینگ نیز رسانیده میشود تا در مجلس مزاییده حضور یابند در غیر آن حق شکایت را ندارند.۹۷۰۴

### پر دېورند فرضي...

غاړو ته سیمي تشي شوې دي. موږ دوه ځلې له پاکستاني چارواکو سره خبرې وکړې او هغوی ته مو وویل،چې دغه لاره نه باید سیاسي شي.)) دا په داسې حال کې ده، چې له تېرو کابو دوو اوونیو راهیسې پاکستاني لوري د تورخم لاره د هر ډول تګ راتګ پر مخ تړلې. هره ورځ د ناروغانو په ګډون ګڼ شمېر خلک او همدارنګه له ۵ زرو ډېرې په سوداګریزو توکو بار لارۍ د تورخم دواړو غاړو ته ولاړې دي چې میلیونونه ډالره یې د دواړو غاړو سوداګرو ته زیان اړولی دی.

### پیشرفت کار...

گفتنیست که در بخشی از گزارش انتونیو گوترش نوشته شده که برای کمک با ۱۶،۸ میلیون نیازمند در سال ۲۰۲۵ میلادی در افغانستان ۲،٤۲ میلیارد دالر نیاز است، اما تا کنون ۳،۵ درصد این بودجه تأمین شده است.عبداللطیف نظری معین مسلکی وزارت اقتصاد در واکنش به این بخش گزارش گوترش، تأکید میکند که مسایل اقتصادی باید از مسایل سیاسی جدا نگهداشته شود.نظری گفت: ((تقاضای ما این است که مسایل سیاسی از مسایل اقتصادی تفکیک شود و کمک به مردم افغانستان همچنان ادامه داشته باشد.))از سویی هم عبدالنصیر رشتیا، مبصر اقتصادی میگوید، کشورهایی که کمکهای بشری را سیاسی میسازند، مرتکب نقض حقوق بشر میشوند. به گفته وی این کمکها به گونه مستقیم در اختیار مردم قرار میگیرد و حکومت افغانستان در توزیع آن دخالت ندارد: (( بدون شک تمامی کمکهایی که به افغانستان صورت گرفته است، در قالب کمکهای بشردوستانه بوده و این کمکها به طور مستقیم در اختیار مردم قرار میگیرد و به نیازمندان توزیع می شود، هرگاهی این کمکها سیاسی شود و کسانی که این کار را انجام دهند، بدون شک ناقضان حقوق بشر هستند، چون این کمکها به مردم میرسد و حکومت افغانستان در این راستا هیچ کدام دخالت ندارد.))این در حالیست که بیشتر نهادهای کمک رسان بینالمللی میگویند که به دلیل کمبود بودجه، نمیتوانند به تمام نیازمندان در افغانستان رسیدگی کنند.از سویی هم، در پی تعلیق کمکهای امریکا نیز روند کمک رسانی برخی نهادهای بینالمللی در افغانستان مختل و یا متوقف شده است.

### د مېرمنو حقونه؛...

یوازې د سیاسي فشار وسیله ده، نه د ښځو د وضعیت د ښه کولو لپاره ریښتینی غږ. افغانستان د خپل دیني او کلتوري اساساتو پر بنسټ د ښځو عزت، حقوق او امنیت تضمین کړی، چې دا د نړۍ لپاره د انساني کرامت یو ستر پیغام دی.

### ګاونډي هیوادونه...

شوي ټانکونه او وسلې رنګ کړې او د افغانستان په پوځ یې وپلورلې. د ښاغلي امان په وینا: امریکا افغانستان ته د دولت جوړونې او ملت جوړونې لپاره نه، بلکې د چور، چپاول او د نشهیي توکو د ترویج، نفاق اچولو او د مسلمانانو د وژنې لپاره راغلي وه. بله خوا پخواني جنرال شعور ګل پښتون ویلي: ټرمپ دوه ځله اعلان وکړ چې زموږ وسلې او وسایط راکړئ، خو امریکا چې زموږ څومره وسلې له منځه وړې، د هغو یوه پر سلمه برخه یې هم نه دي راکړي. امریکا چې له موږ وسلې غواړي، نو زموږ وسلې به څوک راکوي؟ نوموړي زیاته کړې: (( موږ یوه پیړۍ مخکې اردو تشکیل کړی و او پوځي نظام مو درلود. له هغه وخته تر اوسه مو څومره وسلې درلودې؟ د ننګرهار فرقې زر ټانکونه درلودل او موږ ډېرې ثقیله وسلې درلودې.))ښاغلي پښتون ویلي، چې امریکا په تېرو شلو کلونو کې د افغانستان ثقیله وسلې او ډیسي توپونه د کومک په نوم د ډایاک او ډي ډي آر په نامه له منځه یووړل.د تېرې ادارې د دفاع وزارت سلاکار او د ګارنیزیون قومندان جنرال افضل امان ویلي، چې له افغانستان څخه بهر ته وړل شوې وسلې د افغان ملت حق دی. موږ له خپل حق څخه دفاع کوو او هېڅاته یې نه ور پرېږدو. نوموړي زیاته کړې، چې بهر ته وړل شوي تجهیزات او وسایط د ملت دي او هېڅوک حق نه لري ووایي، چې باید امریکا ته وسپارل شي. پخواني جنرال عبدالستار ختګر بیا ویلي، چې افغانستان تل له خپلو ګاونډیانو سره ښه تعامل کړی او له نورو هم ښه تعامل غواړي، خو که څوک تجاوز کول غواړي، نو زموږ تېر تاریخ دې وګوري، له ښه تعامل پرته یو بل تاریخ هم لري، چې هغه متجاوزینو ته غاښ ماتوونکی ځواب دی. نوموړي زیاته کړې: (( ټرمپ وایي چې د بګرام نیول او وسلې اخیستل غواړو، موږ پخواني جنرالان پر اسلامي امارت غږ کوو، خنګه مو ،چې خپل هېواد له اشغاله خلاص کړ، هېڅا ته اجازه ورنه کړئ چې خپل جنګونه له افغانستان څخه وکړي او دا خاوره له خپلو سیالانو سره د سیالۍ او د جګړې ډګر وګرځوي.))ښاغلي عبدالستار تینګار کړی: امریکا چې د وسلو دعوه کوي، موږ هم د هغو وسلو تاوان غواړو، چې دوی له منځه وړي او موږ ته یې په مقابل کې کمزورې وسلې او مهمات راکړي دي.

### غـزه کې د اوربند...

تفصیل نه دی ورکړ شوی. غزه کې د اوربند د دوهم پړاو د ټینګښدو لپاره د حماس غورځنګ یو پلاوی قاهرې ته تللی او هلته یې د اوربند د دوهم پړاو خبرو اترو لپاره د منځګړو له استازو سره خبرې کړې دي. یاده دې وي، چې غزه کې د اسرائیلي اشغالګرو او حماس جهادي غورځنګ ترمنځ د اوربند لومړی پړاو د قطر، مصر او متحدو ایالاتو په منځګړیتوب د تېرې جنوري میاشتې په ۱۹مه پیل او د رواني مارچ میاشتې په پیل کې پای ته ورسېد، چې په اوږدو کې یې اسرائیل څو ځله له اوربند څخه پر سرغړونو تورن شول.

### د واشنګټن غوښتنې...

سید عباس عراقچي ویلي، چې د ټرمپ لیک یې نه دی ترلاسه کړی. نوموړي زیاته کړې: ((موږ هم همداسې اورېدلي، خو تر اوسه مو کوم څه نه دي ترلاسه کړي.))له دې وړاندې په ملګرو ملتونو کې د ایران استازولۍ هم ویلي و، چې د ټرمپ له لوري یې هېڅ لیک نه دی ترلاسه کړی.

### سوریه کې د وروستیو...

د بشري حقونو د څارنې ډله، چې د سوریې دننه له سیمهییزو شبکو څخه معلومات راټولوي، ورمه ورځ یې په هېواد کې وروستۍ جګړه په تېرو ۱۴ کلونو کې د ښځو له ټولو وژونکې دوره وبلله. د سازمان د موندنو له مخې، تېره پنجشنبه د سوریې د موقت حکومت د امنیتي ځواکونو او پخواني ولسمشر بشارالاسد ته د وفادارو ملیشو ترمنځ نښتې پیل شوې، په عمده توګه د هېواد په لوېدیځ ساحل کې، په ځانګړې توګه په طرطوس او لاذقیه کې او د شنبه تر ورځې پورې د ښځو د قربانیانو شمېر له ۱۰۰۰ څخه ډېر شو. دا نښتې لومړي لوېدیځو سیمو ته خپرې شوې، لکه د لاذقیه ولایت ساحلي ښار جبله او بیا د طرطوس، حمص او حما ولایتونو ته. د پنجشنبه په ورځ نښتو کې لږ تر لږه ۴۸ تنه ووژل شول، خو په راتلونکو ورځو کې، په ځانګړې توګه د جمعې او شنبه په ورځو کې، د وژل شویو شمېر په چټکۍ سره لوړ شو. د سوریې د بشري حقونو د څارنې ادارې دا نښتې د ۲۰۲۴ م کال په ډسمبر کې د اسد د رژیم له نسکورېدو راهیسې له ټولو خونړۍ بللې دي او د احمد الشرع په مشرۍ د نوي حکومت لپاره یې د یوې لویې ازموینې په توګه ګڼې. د سوریې د موقت حکومت مشر احمد الشرع هم په یوه پیغام کې اسد ته وفادارو ځواکونو ته خبرداری ورکړ چې تسلیم شي او خپلې وسلې کېږدي او د دوی کړنې یې لویه او نه بښونکې ګناه وبلله.

### شمالي کوریا خپل...

په وزن سره د ۱۰ اټومي توغندیو د انتقال وړتیا لري.کارپوهانو د شمالي کوریا دغه اوبتل، چې د اټومي توغندیو د انتقال وړتیا لري د جنوبي کوریا او امریکا لپاره جدي ګواښ ګڼلی.

### « فراه هدا روب » ...

تولید کړي، چې ورسره به د کارکوونکو شمېر ۸۰ تنو ته لوړ شي. اوس مهال، دا تولیدي شرکت خپل روب ۵ پلورنځیو ته رسوي، خو که یادې ستونزې حل شي، نو د افغانستان ګنو ولایتونو ته به خپل صادرات پیل کړي. د یادونې وړ ده، چې دغه شرکت د روب تر څنګ له وطني کرنیزو محصولاتو څخه د انارو جوس، ترشي، چکني او مربا هم تولیدوي. باختر

### قطر سرې میاشتې...

د یاد کلینیک آمر ډاکټر محمد فاروق وایي: د دې سیمې اوسېدونکي په خاص ډول مور او ماشوم له سختو روغتیایي ستونزو سره مخ وو ،چې اوس به یې دغه ستونزې تر یو حده کمې شي. (( د دغې سیمې خلک له زیاتو ستونزو سره مخ او کلینیک ته یې لاسرسی ډېر سخت و، په دې سیمه کې تر اوسه کلینیک هم شتون نه درلود، تر ډېره به زموږ خدمتونه په داخله برخه کې زیات وي. په نسائي او ولادي برخه کې به فعالیت وي، همداسې په نورو بیلابیلو برخو کې.))د ډنډ ولسوالۍ اوسېدونکي هم د یاد کلینیک په پرانیستو باندې خوښ دي او غوښتنه کوي ،چې په نورو بیلابیلو برخو کې روغتیایي خدمات وړاندې شي او دا ډول کلینیکونه دې په نورو کلیو او ولسوالیو کې فعال کړای شي. د دې ولسوالۍ دوه تنه اوسېدونکي محمدزمان خان او داروخان په دې اړه وایي: (( دا خو ډېر ښه کار وشو. مخکې به یو ماشوم مریض شو، موږ به مجبور وو، چې ښار ته یې بوزو او کوښښ باید وشي، چې دا کلینیک ښه مجهز شي، چې زموږ ستونزې راحل کړي.)) (( په دې علاقه کې مسکینان خلک شته ، چې بازار ته د تګ وس نه لري، رسیده ګي نه شي کولای. په دې سره به خلکو ته آسانتیا رامنځ ته شي، خلک خوشحاله دي، نورې ستونزې هم باید د خلکو حل شي.)) ویل کېږي چې زیاتره دا ډول روغتیایي کلینیکونه له جوړېدو وروسته د درملو له نشتون سره مخ وي، چې وروسته یې خدمات بېخي پر نشتون حساب وي، خو د افغاني سرې میاشتې مسئولین وایي: د یاد کلینیک ټول مصارف د یوه کال لپاره د قطر سرې میاشتې له لوري ترسره کېږي.

### غور کې ترافیکي پېښې...

او د ترافیکي قوانینو په اړه نه پوهاوی له هغو لاملونو بلل کېږي ،چې له امله یې هېواد کې ترافیکي پېښې رامنځ ته کېږي او له هېوادوالو څخه قرباني اخلي.

### د سرپل د ۶۴ ښوونځیو...

د یادونې وړ ده، چې د اسلامي امارت له لوري د ښوونیز نظام د ملاتړ او پیاوړتیا ژمنو او هڅو ته په کتو تېرو څه باندې درېوو کلونو کې په پلازمېنه او ولایتونو کې ګڼ شمېر نوي ښوونځي جوړ او یا هم ترمیم شوي، چې دا هڅې لاهم دوام لري.

### در پکتیکا زمینه...

انکشافی و اصلاحی را تهیه و منظور نماید. به گفته وی این پلان باید بتواند نیازها و مطالبات مردم و یک شهر معیاری را تکمیل کند. بر اساس معلومات، در پلان منظور شده انکشافی اصلاحی و تفصیلی یاد شده (۲۱۶) مارکیت (۸) سرک فرعی، مساجد، تشناب های شهری، ذخیره های آب، سیستم معیاری کانالیزاسیون و سایر تسهیلات ضروری شهری شامل است. سرمایه گذاران محلی اطمینان داده اند که با منظوری پلان جدید، سرمایه های خود را برای توسعه و انکشاف شهر خود به کار خواهند گرفت. وزارت شهرسازی و مسکن بر اساس پلان ها، فرصت سرمایه گذاری منظم و موثر را در کشور فراهم می کند و از توسعه غیر پلانی جلوگیری می کند.

### پاکستان د ګاونډیو...

له خوا روزل کېدونکي داعش ډلې د ګاونډیانو د تهدید او د یوې نړیوالې تروریستي پدیدې په توګه د پاکستان د ګټو لپاره کارول کېږي.))د سیاسي چارو شنونکی کمال ناصر اصولي وایي: (( د داعش په شمول سخت دریځې ډلې د تاریخ په اوږدو کې پاکستان روزلې دي او دا یې ښه مثال دی ،چې د داعش یو کس یې پر امریکا خرڅ کړ. پاکستان تل سخت دریځې ډلې روزلې او توپک یې ورکړي. په ټوله کې باور دا دی، که نړیواله ټولنه د دې ستر مشترک ګواښ مخه ونه نیسي، نه یوازې دا چې د پاکستان ګاونډیو هېوادونو او سیمې ته به ستونزې جوړې شي، بلکې د نړۍ امنیت به هم وګواښي . د سیاسي چارو شنونکي شهزاده مسعود وایي: (( که چېرې نړیواله ټولنه پر یوه واحد موقف د ترهګرۍ د دغو مرکزونو مخه ونه نیسي، زه فکر کوم نه یوازې دا چې سیمې او ګاوند ته به ستونزې پیدا کړي، بلکې نړۍ ته به هم مشکلات پیدا کړي.))د سیاسي چارو شنونکی ادریس محمدي ځاځی وایي: (( نړیوال باید غوڅه پرېکړه او اقدام وکړي، ترڅو د دغه شان ډلو ټپلو او خوځښتونو د فعالیت د مخنیوي لپاره د افغانستان حکومت ته لاس ورکړي، ترڅو د دغه شان ډلو مخه ونیول شي.)) د سیاسي چارو شنونکي غوښتنه کوي چې نړۍ باید د هغو ډلو د مرکزونو د له منځه وړلو لپاره جدي اقدام وکړي چې د پاکستان ملاتړ ورسره دی او روزنیز کمپونه یې ورته جوړ کړي دي.

### د ۴۰۰۰ مرکزونو له...

کوي تر څو ورته معالجوي خدمتونه وړاندې شي. د نوموړي په خبره: نسبت وړاندې ته د روغتیایي خدمتونو اندازه پورته شوې او د روغتیایي پرسونل شمېر هم د تېر په پرتله زیات شوی دی. همدارنګه د هېوادوالو روغتیایي خدمتونو ته لاسرسي زیات شوي دي چې په همدې اساس روغتیایي مرکزونو ته هم د خلکو مراجعه زیاته شوې ده. له هېوادوالو څخه غواړم چې کله یې د کورنۍ کوم غړي په ځانګړي ډول کوچنیان د تنفسي سیستم په ناروغۍ اخته کېږي، په لومړي سر کې دې روغتیایي مرکزونو ته لاړ شي. په داسې حالاتو کې چې کوچنیان د تنفسي سیستم په ناروغۍ اخته کېږي، په لومړي سر کې یې درملنه اسانه او شوني وي، خو کله چې پرمختللو حالتونو ته ځي، په داسې حالاتو کې بیا د ماشومانو ژوند د مرګ له ګواښ سره مخامخ کېږي، نو کورنۍ دې په داسې حالاتو کې پر وخت اقدام وکړي تر څو یې کوچنیان د مرګ له ګواښ څخه وژغورل شي. زیارمل هوتک

### هلمندکې په بدو...

دا په داسې حال کې ده چې د امربالمعروف، نهي عن المنکر او شکایتونو اورېدلو وزارت د معلوماتو له مخې، په تېرو درېوو کلونو کې د شاوخوا ۶زره جبري ودونو مخه نیول ی ده.

### خوست کې سلګونو...

ته جدي پام وکړي. د خوست ولایت د معلولینو چارو رئیس عبدالرحیم احسان وایي:((نغدي مرستې هم شته او ترڅنګ یې د خوراکي توکو مرستې هم کړې دي. موږ ۷.۵ میلیونه افغانۍ پر یتیمانو او معلولینو باندې وېشلې دي.) د خیریه بنسټ استازی وحیدالله پیغام وایي: (( موږ یوازې په دې ولایتونو کې نه چې کوم مې درته یاد کړل، بلکې موږ په ټول افغانستان کې کار کوو، په بېلابېلو ولایتونو کې. دا د رمضاني خوراکي توکو کڅوړه ده. توزیع یې لرو، له دې سره سره موږ هر ماښام په ۱۰ ولایتونو کې د روژه ماتي دسترخوان لرو ،چې په هغه کې هم توزیع لرو.))

### بغلان کې ۸۵ سلنه...

خو غوښتنه کوي چې د دې ولایت ګوټ- ګوټ ته باید روغتیایي خدمتونه ورسېږي څو د اړتیا په وخت کې خلک ترې ګټه پورته کړي.

### کندهار کې یو...

کلي کې د دوو میلیونو افغانیو په ارزښت د سربند او پارچاوې جوړولو تخنیکي سروې بشپړه شوې او تمه ده چې د راتلونکو اوونیو په ترڅ کې یې عملي کارونه هم پیل شي.د کرنې ریاست تخنیکي انجنیران وایي، چې د سربند او پارچاوې په جوړېدو سره به ۱۵ کسانو ته د لنډمهاله کار زمینه هم برابره شي. د دې پروژې موخه د اوبو بهیر تنظیمول، کرنیزو ځمکو ته کافي اوبه برابرول، د وچکالۍ پرمهال د اوبو ذخیره کول، د اوبولګولو د سیستم اغېزمنتیا او د خاورې د فرسایش مخنیوي ښودل شوي دي. د نېش ولسوالۍ لپاره یادې دوه مهمې پروژې د سیمې د کرنیزو فعالیتونو د پراخوالي، د بزګرانو د اقتصادي وضعیت د ښه والي او د اوبو لګولو سیستم د پیاوړتیا لپاره اساسي ګامونه بلل کېږي. د کرنې ریاست مسئولین وایي چې په راتلونکي کې به هم ورته پروژې پلې شي، څو د کندهار ولایت کلیوالي سیمو ته د اوبو لګولو غوره اسانتیاوې برابرې شي.

### لوګر کې ۱۲درملتونونه...

کې ځینو یې د فعالیت قانوني اسناد نه درلودل، په ځینو درملتونونو کې تاریخ تېر او مشکوک درمل موندل شوي دي او همدارنګه په ځینو نورو کې بیا غیر مسلکي کسان پر دندو بوخت وو.))نوموړي همدارنګه زیاته کړه: پر تړل شویو درملتونونو سربېره یو لابراتوار، ۲ کتنځي، یوه د تلویزنې معایناتو خونه او یو کلینیک هم د غیر قانوني فعالیت له امله تړل شوي دي.

د پلعلم یوه اوسېدونکي عبدالله رسنیو ته ویلي: د عامې روغتیا ریاست د پلټنې او څارنې کارکوونکو ته پکار ده، چې د دې ولایت په پاتې ولسوالیو کې هم ورته پلټنه وکړي او هغه کسان قانون ته وسپاري چې د روغتیا برخه کې غیر قانوني فعالیت تر سره کوي.هېره دې نه وي چې له دې وړاندې هم د لوګر ولایت د عامې روغتیا ریاست له لوري په مرکز پل علم کې ګڼ شمېر درملتونونه او روغتیایي کتنځایونه د غیر معیاري فعالیت له امله تړل شوي وو.

### تېره اوونۍ د وسپنې...

او په ټوله کې اقتصادي ثبات، ترقۍ او ځان بسیاینې ته لاره هوارېږي. دغه راز د ټولګټو وزارت هڅه کوي، ترڅو د لا زیاتو انتقالاتو لپاره مناسب شرایط برابر او سوداګرو ته اړین سهولتونه برابر کړي.

Hewad Daily

د ورځپاڼو رئیس : انجنیر عُزیر« بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷۴۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ کابل - افغانستان
دارېکو شمېره: س ۲۵۲۶۳۴۰ - ۰۲۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼې انټرنېټي پاڼې دلاندې وېب سایټ له لارې هم کتلی شئ
ویب سایت: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶-۰۷۳۶۰۶۰۷۳

دو شنبه د رمضان المبارک ۱۰مه ۱۴۴۶ق کال د ۱۴۰۳ ل کال د کب ۲۰مه د 2025 م کال د مارچ ۱۰مه

# شنونکي: پاکستان د ګاونډیو هیوادونو د ګواښلو لپاره په خپله خاوره کې ترهګر روزي

وروسته له هغې چې پاکستان د محمد شریف الله په نامه یو کس د داعش ډلې د غړیتوب او د کابل هوايي ډګر په برید کې د لاس لرلو په تور ونیو او امریکا ته یې وسپاره، هغه شکونه پر یقین بدل شول چې د پاکستان تر کنټرول لاندې خیبرپښتونخوا او بلوچستان کې د یاد هېواد له لوري تمویلېدونکې جنګي ډلې روزل کېږي او منظم مرکزونه لري. اسلامي امارت هم وړاندې ویلي و، چې په پاکستان کې د داعش ډلې د غړیو نیول د دې ښکارندویي کوي چې دا ډله د افغانستان برعکس په پاکستان کې ده. د سیاسي چارو شنونکي وايي: پاکستان سیمې او ګاونډیو هیوادونو ته د داعش په شمول نورې جنګي ډلې د خپلو اهدافو د تحقق لپاره لېږي او په دې توګه یې سیمې ته ګواښ پېښ کړی. د سیاسي چارو شنونکی حکمت‌الله حکمت وايي: (( زموږ په سیمه کې د داعش تېکه دار، روزونکي او صادروونکي د پاکستان پوځ او استخبارات دي. دوی اوس له غربي نړۍ او غربي استعمار سره په ګډه د داعش خراسان ډلې څو ځانګې د پاکستان تر کنټرول لاندې په پښتونخوا او بلوچستان کې فعالې کړې دي. پر دې ټوله نړۍ خبره ده ،چې د پاکستان د پوځ او آی. ایس.آی ۳مخ

## د عامې روغتیا وزارت:
## د ۴۰۰۰ مرکزونو له لارې هیوادوالو ته روغتیایي خدمتونه وړاندې کېږي

د افغانستان اسلامي امارت د عامې روغتیا وزارت د ویاند ډاکټر شرافت زمان د وینا پر بنسټ د عامې روغتیا وزارت له لوري په ټول هېواد کې ولسونو ته د نږدې څلور زره روغتیايي مرکزونو پر مټ روغتیايي خدمتونه وړاندې کېږي. د ژمي په موسم کې اکثریت د تنفسي سیستم د اړوندو ناروغانو ګراف په سړو سیمو کې پورته کېږي، چې له بده مرغه سږکال هم د تنفسي ستونزو د در لودونکو ناروغانو ګراف پورته و، چې اکثریت یې کوچني ماشومان وو. د شرافت په وینا: د درې لکه او اویا زره په خوا او شا کې د سینه بغل او په تنفسي ناروغۍ اخته کسانو روغتیایي مرکزونو ته مراجعه کړې ده چې نسبت وړاندې ته یې له نېکه مرغه د مړینې فیصدي را ښکته شوې ده. د عامې روغتیا وزارت هڅه همدا ده چې وکولای شو د موسمي ناروغیو د مخنیوي لپاره وقایوي تدابیر عملي کړو او د دې تر څنګ کوم ناروغان چې له موسمي ناروغیو څخه اغېزمن شوي دي، روغتیايي مرکزونو ته مراجعه ۳مخ

## هلمندکې په بدو کې د ۲ نجونو د ورکولو مخنیوی‌وشو

هلمند

د امربالمعروف او نهي عن المنکر محتسبینو په هلمند ولایت کې په بدو کې د دوو ځوانو نجونو د ورکړې مخه نیولې ده. د امربالمعروف، نهي عن المنکر او شکایتونو اورېدلو وزارت په یوه خبر پاڼه کې ویلي چې په واشیر ولسوالۍ کې د دوو کورنیو ترمنځ دښمني د محتسبینو په منځګړتوب پای ته ورسېده. سرچینه زیاتوي: د دغو دوو کورنیو تر منځ د دښمنۍ پر مهال خلکو پرېکړه کړې وه چې له دغو کورنیو څخه یوه به یو میلیون او پنځه سوه زره افغانۍ او دوه نجونې په بدو کې ورکوي.خو د امربالمعروف او نهي عن المنکر محتسبینو د دغه کار مخه ونیوله. ۳مخ

## خوست کې سلګونو معلولینو سره د خوراکي توکو مرسته وشوه

په خوست کې د یوه خیریه بنسټ په همکارۍ له ۳۰۰ هغو اړمنو کورنیو سره چې سرپرستان یې معلولین دي، د خوراکي توکو مرسته وشوه.معلولین وايي، د بد اقتصادي وضعیت له امله سختو ستونزو سره مخ دي. د دوی په خبره، په کار دي، چې پر افغان حکومت سربېره ورسره خیریه بنسټونه هم د دا ډول مرستو کچه ډېره کړي ، ترڅو په دې ولایت کې زرګونه اړ معلولین دژوند سختۍ پرې اسانه کړي. معلول نور وزیر وايي: ((زموږ ستونزې دا دي، چې په کور کې ناروغان لرم، دومره وس نه لرم، چې اول د ځان او بیا د خپلې مېرمنې درملنه پرې وکړم.))یوه بله معلوله بیا وايي: ((ډېره خوشحاله شوم، له ټولو مننه کوم. خدای (ج) دې وکړي چې له مظلومانو سره نورې مرستې هم وشي.)) په ورته وخت کې مسئولین بیا ډاډ ورکوي ، چې د حکومت او د اړوندو همکارو بنسټونو په مرسته یې د معلولینو ترڅنګ بې سرپرستو کورنیو ته پر وخت مرستې رسولې او په راتلونکې کې هم هڅه کوي، ترڅو د اړو معلولینو او کورنیو لاسنیوي ۳مخ

## کار ساخت ۲ شبکه آبرسانی در غزنی آغاز شد

مسئولین محلی در غزنی، می‌گویند که کار ساخت دو شبکه آبرسانی در ولسوالی ناوه این ولایت آغاز شده است. این شبکه‌ها قرار است از سوی ریاست احیا و انکشاف دهات غزنی، در روستاهای «فیض‌آباد» و «سکندرخیل» ولسوالی ناوه ساخته شوند. محمدقاسم امینی، رئیس احیا و انکشاف دهات غزنی، می‌گوید که کار ساخت این دو شبکه آبرسانی با هزینه بیش از ۱۳میلیون افغانی روز یکشنبه ۱۹ حوت آغاز شده است. به گفته رئیس احیاء و انکشاف دهات غزنی، با ساخت این شبکه‌ها ۲۱۰ خانواده در روستای «فیض‌آباد» و ۲۶۴ خانواده در روستای «سکندرخیل» از آب آشامیدنی بهره‌مند خواهند شد. ولسوالی ناوه، در جنوب غزنی، از ولسوالی‌های محروم این ولایت است که باشندگان آن از دسترسی به خدمات آب، برق، جاده، معارف و صحت محروم بوده اند.

## کندهار کې یو چکډېم جوړ او د یوې پروژې سروې بشپړه شوه

د کندهار په نېش ولسوالۍ کې د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ وزارت له پراختیایي بودیجې له تمویل شویو دوو مهمو پروژو څخه یوه بشپړه او د بلې پروژې تخنیکي سروې پای ته رسېدلې ده. د نېش ولسوالۍ د «کنده» په سیمه کې د ۲.۶ میلیونو افغانیو په لګښت چکډېم جوړ او ګټې‌اخیستنې ته سپارل شوی دی. یاده پروژه د کندهار د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریاست په رهبرۍ او د طبیعي سرچینو آمریت تر څارنې لاندې، په پنځو میاشتو کې بشپړه شوې. یاد چکډېم ۲۰۰ متره اوږدوالي، ۲۸ متره پراخوالي او شپږ متره لوړوالي لري ،چې د باراني اوبو د زېرمې، د ځمکې لاندې اوبو د سطحې لوړولو او د کرنیزو ځمکو د خړوبولو لپاره به مهم رول ولوبوي.د دې ترڅنګ، د چکډېم د جوړولو پرمهال درې مسلکي او ۲۵ غیرمسلکي کارکوونکو ته د کار زمینه هم برابره شوې وه. د سیمې بزګران او مالداران د یادې پروژې د پلي کولو له امله خوښي څرګندوي او د کرنې ریاست دا هڅې ستايي.له دې سره همماله، د نېش ولسوالي د "میانکو" ۳مخ

## لوګر کې ۲درملتونونه د غیرقانوني فعالیت له امله وتړل شول

د لوګر د عامې روغتیا ریاست مسئولین وايي ،چې د دې ریاست د پلټنې او څارنې د کارکوونکو له لوري په برکي‌برک ولسوالۍ کې ۱۲ شخصي درملتونونه د غیر قانوني فعالیت له امله تړل شوي دي.

د دې ولایت د عامې روغتیا ریاست ویاند فهیم‌الله لودین رسنیو ته ویلي چې، یاد درملتونونه د عامې روغتیا ریاست د پلټنې او څارنې د بررسي ټیم له‌خوا د غیر قانوني فعالیت له امله تړل شوي دي.لودین زیاته کړه: (( په تړل شویو درملتونونو ۳مخ

## بهرنۍ لنډ خبرونه

### غزه کې د اوربند د دویم پړاو لپاره پرمختګ شوی

رویټرز خبري اژانس غزه کې د اوربند د دوهم پړاو په اړه لیکلي: اسرائیل او حماس جهادي غورځنګ د اوربند د راتلونکي پړاو د ټینګېدو لپاره چمتووالی ښودلی او په دې برخه کې د منځګړو له لوري د پرمختګ هڅې روانې دي.اژانس د نتنیاهو د دفتر په حواله وایي: د اسرائیلو یو پلاوی نن دوشنبه د اوربند دوهم پړاو خبرو اترو لپاره دوحې ته ځي. سرچینې د حماس جهادي غورځنګ له قوله ویلي، د غزې اوربند د دوهم پړاو خبرو د پیل کېدو لپاره مثبتې نښې شته، خو نور ۳مخ

### ایران:
### د واشنګټن غوښتنې به ونه منل شي

د تسنیم خبري اژانس له لوري په خپره شوې وېډیو کې ښکاري، چې د ایران مذهبي مشر ایت‌الله علي خامنه‌یي له امریکا سره د خبرو اترو هر ډول امکان رد کړی او ټینګار یې کړی، چې د واشنګټن غوښتنې به ونه منل شي. نوموړي ډونالډ ټرمپ ته په اشارې سره ویلي، (( ځینې حکومتونه او زورور شخصیتونه پر خبرو ټینګار کوي، حال دا چې موخه یې د ستونزو حل نه دی، بلکې غواړي خپلې غوښتنې تحمیل کړي.))د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ تېره جمعه ویلي و، چې خامنه‌یي ته یې لیک استولی او تهران یې د هستوي خبرو لپاره بللی دی.
همماله د ایران د بهرنیو چارو وزیر ۳مخ

### سوریه کې د وروستیو نښتو له امله د وژل شویو شمېر له ۱۰۰۰ تنو اوښتی

د سوریې د بشري حقونو د څار سازمان راپور ورکړی، چې د سوریې د امنیتي ځواکونو او د دې هېواد د پخواني ولسمشر بشار الاسد د پلویانو ترمنځ له تېرې پنجشنبه راهیسې د نښتو له امله د وژل شویو شمېر له زرو تنو اوښتی دی.اسوشیټډ پرس دغه پېښه سوریه کې د تېرو ۱۴ کلونو جګړې له پیل راهیسې له ټولو خونړۍ پېښه بللې ده . په بریتانیا کې مېشته د سوریې ۳مخ

### شمالي کوریا خپل هستوي اوبتل ننداري ته وړاندې کړ

د شمالي کوریا دولتي اژانس د دې هېواد د هستوي اوبتل انځورونه رسنیز کړي او ویلي یې دي، چې دغه ستراتیژیک اوبتل په رهبري شویو راکټونو سمبال دی. دغه اژانس ویلي: یاد اوبتل د شمالي کوریا په مهمو کښتیو کې د جوړېدو په حال کې دی، چې وړمه ورځ د دې هېواد رهبر کیم جونګ اون یې هم د جوړېدو له پروسې لیدنه کړې. بله خوا اسوشیټډ پرس د کارپوهانو له قوله ویلي: دغه اوبتل له ۶ څخه تر ۷ زره ټنو ۳مخ